

دَ پاکستان آئین سازه اسمبلۍ کښې

# دَ باچا خانؒ

# تقریرونه

# پیش لفظ

زمونږ دَ هادي او رهبر باچا خان رح په حواله اشرافیه طبقې او دَ هغې پاللو دَ ابلاغ ذریعو چې دَ پاکستان دَ شروع نه کوم نفرت راپیدا کونکے مُهم شروع کړے وۀ، دَ هغې یوه نتیجه دا راووته چې دَ نوي نسل او خصوصاً دَ پاکستان دَ نورو برخو سره تعلق لرونکو خلقو په ذهنونو کښې دا خبره پخه شوه چې خدائي خدمتګار تحریک، باچا خان رح او دَ هغۀ ملګري پاکستان دَ خپل سیاسي جدوجهد دَ ناکامۍ سبب ګڼي او له دې وجې نۀ صرف دا ملک ماتول بلکې په ملک کښې دننه انارکي پېدا کول غواړي. په دې کښې هېڅ شک نشته چې باچا خان رح او دَ هغوي ملګري دَ هند دَ تقسیم مخالف وو خو دَ هغوي دا جدوجهد دَ اخلاص، قربانیو او دَ ښو نیتونو دَ لاړواله مثالونو نه عبارت دے. هغوي دا جدوجهد دَ خط وکتابت او ستېنوګرافر په مرسته نۀ وۀ کړے بلکې دَ دې سیمې دَ پېرنګي دَ غلامۍ نه دَ خلاصولو دپاره ئې هغه قربانۍ ورکړې وې چې مثال نۀ لري. نور زیاتے ورسره دا وشۀ چې دَ قیام پاکستان نه پس دَ دوي دَ زوړ سیاسي جدوجهد په نتیجه کښې ریاست دَ دوي دَ قبلولو نه په عملي توګه انکار وکړو حالانکې باچا خان رح دَ مجلس آئین ساز غړے وۀ، کوم چې دَ پاکستان دَ جوړېدو نه پس دَ ملکي نظم او نسق په حواله دَ قانون جوړولو اختیارمند وۀ او صرف دا نه بلکې دوي او دَ دوي ملګري دَ بدترین ریاستي جبر ښکار هم شو. تر اوږدې مودې په جېلونو کښې وساتلے شو. دوي او دَ دوي ملګریو سره هغه سلوک وکړے شو کوم چې به دَ جاهلیت په زمانه کښې مفتوحه خلقو سره کولے شۀ. ریاستي منابعې دَ دې خبرې دَ خورولو دپاره مختص کړې شوې چې دَ مسلم

لیګ نه سېوا ټولې سیاسي ډلې غېر ریاستي سوچ لري او باچا خان د دوي سرخېل دے. د دې ملک د اکابرینو په دې سوچ بنده حېرانېږي چې هغوي په شعوري توګه هر یو سیاسي مخالف له په مسلم لیګ کښې د شاملېدو بلنه ورکوله او د یو جماعتي نظام بنیاد ایښودل ئې غوښتل او دا خبره بېخي هېره کړې شوې وه چې د جمهوریت بنائست د اختلاف له وجې ځلا مومي. شاید چې د دې ملک د اکابرینو خیال وؤ چې د ملک خدمت صرف په دې شکل کښې کېدے شي چې ټول خلق صرف او صرف په مسلم لیګ کښې شامل شي او د اِختلاف هېڅ ګنجائش پاتې نۀ شي نو په منظمه توګه مسلم لیګ سره د نظریاتي تړون نۀ لرونکیو مشرانو خلاف یو مُهم وچلولے شۀ، بعضې غداران وګرځولے شي او بعضې کافران او د حکومتي پالیسو مخالفت غېر اسلامي کار وګرځېدو.

دا کتابګوټے په دې حواله د پاکستان په شروع کښې په دستور سازه اسمبلۍ کښې د کېدونکیو بحثونو تفصیل لري، دا یو څو صفحې او د دې متن دا ثابتولو له کافي دي چې د یو نوي مملکت بانیانو د ریاست امورو چلولو د پاره څۀ لاره خوښه کړې وه. کله چې د کانګرس د آئین سازې اسمبلۍ یو غړي دهرندرا ناتهـ دته صاحب د ایف سي آر د تور قانون د لاندې د باچا خان* د ګرفتارۍ خلاف د التواء یو تحریک پېش کول غوښتل نو هغه په دې پوه کړے شۀ چې د حکومت مخالفین کۀ هغه د ایوان غړے ولې نۀ وي، هغوي سره د شوي زیاتي خبره به نۀ شي اورېدلې. حالانکې د التواء په دې تحریک کښې یو څو خبرې داسې وې چې د مخکښې نه فېصله شوې وې. وړومبے خو د هغوي ګرفتاري د ۱۹۰۱ء د یو داسې قانون لاندې شوې وه چې د هغې عملداري د ګورنمنټ آف انډیا ایکټ ۱۹۳۵ء نه پس د بندوبستي علاقو نه د آئین له رویه ختمه شوې وه او په دې کښې هېڅ

شک نۀ وۀ چې دَ لېن دېن دَ تنازعاتو نه سېوا داسې هېڅ يو صورت نۀ وۀ چې دَ بندوبستي علاقې يو عام وګړے دې دَ ايف سي آر لاندې ګرفتار کړے شي لابيا دَ پارليمان غړے. دا تحريک صدرِ مجلس مولوي تميز الدين خان دَ ضروري بحث نه پس په دې بنياد مسترد کړو چې دَ دې معاملې تعلق دَ مرکزي حکومت سره نۀ دے، دا يوه صوبائي معامله ده خو دَ يو قابل وکيل په حېثيت مولوي تميز الدين خان په دې خبره دَ غور تکليف کول هډو محسوس نۀ کړل چې دَ باچا خان ؒ ګرفتاري دَ شمال مغربي سرحدي صوبې (سابقه) دَ داخلي معاملې دَ ګرځولو سوال خو هم هغه وخت پېدا کېدے شو کله چې دَ ايف سي آر دَ قانون لاندې اختيار صوبائي حکومت سره وې. هر څو کۀ دَ هغه وخت وزير اعظم او وزير داخله دواړه دا خبره کوي چې په دې قانون عملدرآمد دَ صوبائي حکومت اختيار دے خو دا خبره دَ هغوي په وېنا قانون خو نۀ شي جوړېدې. دَ ايف سي آر قانون دَ صوبائي حکومت په دائره اختيار کښې کېدو دپاره هېڅ حواله نۀ دې ورکړې شوې او دَ ټولو نه لويه خبره دا چې کال مخکښې يعني په ۱۲ اګست ۱۹۴۷ء هم دې مجلس آئين ساز يوه کمېټي دَ ملک د اوسېدونکو خلقو چې اقليتونه هم پکښې وو، دَ بنيادي حقونو په نوم جوړه کړې وه، هغې ته وئيلي شوي وو چې دَ بنيادي حقونو په حواله دې دَ آئين سازې اسمبلۍ رهنمائي کوي. دَ دې کمېټۍ دَ ټولو غړو تعلق دَ مجلس آئين ساز سره وۀ خو هېچا هم دَ جناب دهرندراناتهـ دته صاحب له اړخه په پېش کړې شوې دې نکته هېڅ غور ونۀ ګرولو چې دَ باچا خان ؒ دَ ګرفتارۍ معامله په هېڅ يو عدالت کښې زېر غور نۀ ده يا په نورو لفظونو کښې هغوي په حبس بېجا کښې ساتلي شوي دي خو دَ بنيادي حقونو دَ آئيني کمېټۍ، صدرِ مجلس، وزير اعظم او وزير داخله او دَ رياست دَ ټولو اکابرينو په نزد دَ دې خبرې هېڅ اهميت نۀ وۀ. دهرندراناتهـ دته صاحب

په ډېر شدید انداز کښې چې کله دا تپوس کوي چې ((کۀ دا تحریک دلته دَ بحث دپاره منظور نۀ کړے شۀ نو زۀ به اخر چرته ځم)). نو هم په دومره شدت سره دا احساس دَ اذیت شکل اختیاروي چې عدالتونه په دې معامله غور نۀ کوي. حکومت خو خپله مدعي دے او دَ آئین سازۍ اداري افسر یعني صدرِ مجلس په دې کښې هېڅ دلچسپي نۀ اخلي نو ظاهره ده چې اصول او ضابطې، قوانین او قاعدې به خپل وجود بائلي. دَ جناب دهرندراناتهـ دته صاحب په دې یوه فقره کښې یو لفظ (دلته) او (چرته) په خصوصیت سره بیا بیا فکر ته بلنه ورکوي.

دَ پاکستان دَ شروع نه دَ بنیادي اُمورو په حواله داسې غلطۍ او کوتاهۍ شته چې تراوسه دَ جناب دهرندراناتهـ دته صاحب دَ سوال ځواب نۀ لري او دَ دې (چرته) درک معلومولو پسې ټول پاکستان لګیا دے ګرځي چې چرته به انصاف په لاس راځي. ستم ظریفي دا ده چې مولوي تمیز الدین خان چې کله دَ آئین سازۍ اسمبلۍ دَ تحلیل خلاف عدالت ته ورسېدو نو هغۀ سره هم هغه سلوک وشۀ کوم چې دوي په آئین سازه اسمبلۍ کښې دهرندراناتهـ دته صاحب سره کړے وۀ او هغوي سره څۀ وشو، ثابت نظام او تل دَ جمهوریت سره هم وشو تر دې چې دې فېصلې دَ اوسنۍ عشرې په شروع کښې جمهوریت او پارلیمان ته دَ دغې (چرته) دَ بې درکه کېدو خبر په دولسم اکتوبر دَ فوځي اقدام دَ باجوازه کېدو په شکل کښې واورولو.

جناب دهرندراناتهـ دته صاحب یو معروف او قابل قانون دان او سیاستدان وۀ. دَ هغۀ تعلق دَ کانګرس سره وۀ او دَ پېرنګي خلاف جدوجهد کښې دَ قېدوبند تکلیفونو برداشت کولو یو پوره تاریخ ئې لرلو. بنګالي ژبې ته دَ پاکستان دَ سرکاري ژبې حېثیت ورکولو ورومبۍ مطالبه دوي کړې وه. په ۱۹۷۱ء کښې دَ یو فوځي اپرېشن په دوران کښې ونیوے شۀ او دَ تفتیش دَ ځائے نه ئې مړے واپس راغے.

دغه وخت دَ دهٔ عمر پينځهٔ اتيا کاله وهٔ. دَ بنګله دېش خلق دهٔ ته دَ دې قربانۍ له وجې شهيد وائي.

په يوه بله مباحثه کښې باچا خان، دَ خپل تېر سياست وضاحت او دَ مستقبل دَ حکمت عملۍ اظهار کوي. راتلونکو پاڼو کښې به دا خبره هم مخې له راشي چې باچا خان چې دَ کومو خبرو اظهار کړے وهٔ نو هغې دَ مستقبل بينۍ دَ پُراسرار علم سره تعلق نهٔ لرلو بلکې دَ هغې لويې هستۍ وِژن وهٔ. کله چې هغوي دَ پاکستان په مجلس آئين ساز کښې دَ دې خبرې اظهار کوي چې په دې ملک کښې کرپشن دے، په نظام کښې هېڅ بدلون نهٔ دے راغلے، وفاقي اکايو سره دَ مرکز سلوک دَ مېرې مور په شان دے او يا دا چې زمونږ حکومتونو له پکار دي چې دَ خپل ځادر سره پښې غزوي يا دَ دې په نتيجه کښې دَ ملک دَ کمزورې کېدو خبره کوي او دَ عدم استحکام ويره ښکاره کوي نو آيا دا خبرې نن غير متعلق دي؟ نن دا خبرې ټول کوي او زياته خوندوره خبره خو دا ده چې ټول مسلم ليګيان هم په دې خبرو شخوند وهي. خو مجموعي رويه هم هغه ده کومه چې دَ غضنفر علي خان وه. کله چې باچا خان* په دغې آئين سازې اسمبلۍ کښې ووې چې وزير اعظم (نوابزاده لياقت علي خان) پېښور ته راغے نو زمونږ مسلم ليګيانو ورونو دوي ته هغه خبره وکړه (دَ نظرانداز کېدو) کومه چې مونږ کوو خو وزير اعظم صاحب ووې چې هغه دَ خيبر نه واخله تر چټاګانګ پورې ټول مسلمانان يو کول غواړي. په دې څوک اعتراض کولے شي؟ خو زمونږ سوال دا دے چې يو طرف ته خو تاسو دَ خيبر نه تر چټاګانګ پورې مسلمانانو يو کولو خبره کوئ نو بل اړخ ته تاسو ته په دې ولې اعتراض دے چې پېرنګي کوم پښتانهٔ ټوکړې ټوکړې کړي وو، هغوي متحد کړے شي، دا څنګه دَ اسلام خلاف ده؟ نو دَ مهاجرينو او ابادکارۍ وزير غضنفر علي خان فتوي وکړه چې دا

دَ اسلام خلاف دي. دا تولې خبرې به لوستونکي په دې کتابګوتې کښې ولولي.

پاکستان کښې دَ اشرافيه طبقې نمائنده دَ قلم خاوندان او دَ مطالعهٔ پاکستان لوستونکي دَ باچا خان په دې عظيم الشان سياسي، جمهوري او آئيني تدبر تنقيد کوي خو لږ دا وګورئ چې هغه خلق چې په دې ملک کښې دَ ازادئ سرکاري مشران جوړ شوي دي او ټول سرکاري عزتونه، مقبوليتونه او مراعات ورته حاصل دي، په دې نکته باچا خان پوه کړي وو چې دَ آئين او قانون ژبه دَ استعمار نه بلکې دَ ازادې جمهوريې پکار وي چرته چې عوام رعايا نه بلکې دَ ملک ازاد او دَ احترام قابل اوسېدونکي ګڼلے شي. دَ خپل دې بصيرت اظهار هغوي په دې لفظونو کړے دے. ((کومه خبره چې ماله ډېر تکليف ذاکوي هغه دا ده چې سرکاري اعلاميې په هغه ژبه او هغه لهجه کښې جاري کولے شي چې برطانوي راج شروع کړې وه.))

په دې مباحثو کښې باچا خان دَ هغو رهنما اصولو ذکر کړے دے چې هغه په موجوده صورت حال کښې هم او په تېرو شوو درې شپېتو کالو کښې عين متعلق دي او دَ هغوي دَ سياسي دانش او تدبر اظهار ترې کېږي. مثلاً سږ کال يعني په ۲۰۱۰ء کښې دَ سېلاب تباهيو خصوصاً پښتونخوا او په عمومي ډول پوره ملک ته نقصان رسولے دے، په کومه زمانه کښې چې باچا خان دَ دغې مرکزي آئين سازې اسمبلۍ ممبر وۀ نو دَ ملک په مشرقي برخه کښې يعني په ننني بنګله دېش کښې يو تباه کوونکے سېلاب راغلے وۀ. باچا خان په دغې حواله وئيلي وو چې دَ اقداماتو کولو صورت دې عملي وي او مونږ له پکار دي چې خپل خرچونه راکم کړو او دَ دې آفت مقابله وکړو. دوي په دې خبره زور ورکړے وۀ چې کۀ پاکستان يو غريب ملک دے نو دې به دَ يو غريب ملک په شان چلول پکار وي او چې کله وخت راشي او

پاکستان مالدار شي نو دَ دې دَ چلولو انداز به هم بیا هغه شان کړے شي. دا دَ حکمت نه ډکه خبره دَ شروع ورځې نه نظرانداز کړې شوې وه.

دا تقریرونه دَ پاکستان دَ مجلس آئین ساز دَ ریکارډ نه حاصل کړي شوي دي او دا کار زمونږ دَ قومي اسمبلۍ دَ غړې محترمه بشریٰ ګوهر دَ مرستې نه بغیر ممکن نۀ وۀ. په بنیادي توګه دا تقریرونه په انګریزۍ کښې وو چې اُردو ترجمه ئې دُرنایاب صاحبزاده او پښتو ترجمه ئې مشتاق مجروح یوسفزي په ډېره مینه او محنت کړې ده. دَ باچا خان ریسرچ سنټر چئیرمېن جناب پروفېسر ډاکټر فضل الرحیم مروت هم دا حق لري چې دَ هغۀ شکریه ادا کړے شي.

اوس حالات ډېر بدل شوي دي. دَ جمهوریت او حزب اختلاف په حواله پاکستان کښې ډېرې خبرې واضحه شوې دي، اوس حزب اختلاف غداران یا کافران نۀ شي ګڼلے بلکې دَ حزب اختلاف دَ اواز احترام دَ جمهوریت دَ روح ګڼلو رواج شروع شوے دے. شاید دَ دې یوه وجه دا هم وي چې پاکستان دَ هغې مرحلې نه تېر شوے دے او تېرېږي چې مسلم لیګ هم دَ حزب اختلاف پارټي جوړه شوې ده خو دَ دې بحثونو اهمیت ختمېدے نۀ شي. دا دَ یوې استغاثې او ثبوت حېثیت لري او دَ دې دا حېثیت به چرې هم ختم نۀ شي.

ځلان مومند
جائنټ ډائرېکټر
باچا خان ریسرچ سنټر
باچا خان مرکز پېښور

# دَ پاکستان دَ دستور سازي اسمبلۍ

# تقريرونه

**دَ زيارت ورځ شپاړسم دسمبر 1948ء**

## دَ خان عبدالغفار خان په گرفتارۍ دَ تحريک التواء په تجويز بحث

**جناب دهرندراناتهـ دته (مشرقي بنګال)**: جناب صدر، زۀ دَ التواء دَ يو تحريک پيش کولو اجازت غواړم.

**صدر مجلس**: کۀ تاسو ته داسې څۀ اجازت پکار وي نو وړومبې دَ دې تحريک دَ باجوازه کېدو په سوال غور پکار دے. تاسو دې تحريک باندې دَ بحث کولو باره کښې څۀ وئيل غواړئ؟

**جناب دهرندرا ناتهـ دته**: وړومبے سوال ستاسو دَ اجازت دے.

**صدر مجلس** : دته صاحب! تاسو دَ بنګال دَ مجلس قانون ساز غړي يئ او په دې لړ کښې دَ هغې مجلس قواعد او ضوابط دَ دې مجلس دَ قواعدو او ضوابطو نه مختلف دي له دې وجې تاسو ته څۀ غلط فهمي کېږي. په دې مجلس کښې دَ تحريک دَ باجوازه کېدو او دَ هغې دپاره دَ صدر دَ اجازت اخستو سوال يو بل سره تړلي دي او هم دَ جواز جوړېدو په صورت زۀ اجازت درکولے شم.

**جناب دهرندراناتهـ دته** : جناب صدر! تر کومې چې دَ دې تحریک دَ باجوازه کېدو سوال دے نو په دې لړ کښې زۀ په متعلقه ضابطو کښې دَ ضابطه نمبر ۱۱ او ۱۲ حواله ورکول غواړم.

**جناب سردار بهادر خان (صوبه سرحد مسلم)**: (نکتۀ اعتراض) جناب صدر! زۀ معزز غړي ته دا تجویز وړاندې کوم چې هغه دې دَ تحریک التواء سره دَ متعلقه قواعدو تفصیل ته دَ تللو نه وړاندې دَ تحریک متن ایوان ته واوروي چې عزتمندو غړو ته معلومه شي چې دا تحریک دَ څۀ باره کښې دے.

**صدر مجلس**: وړومبے خو چې ماته اطمینان وشي چې دا تحریک باجوازه دے او کۀ نه؟

**خان سردار بهادر خان**: جناب صدر! زۀ ډېر په احترام دا وئیل غواړم چې دَ ایوان غړي به وړومبے دَ بحث موضوع نه خبرېدو له ترجیح ورکوي.

**جناب عبدالحمید (مشرقي بنګال)**: زما مؤدبانه تجویز دا دے چې دَ تحریک پېش کولو دپاره ستاسو دَ اجازت سوال دَ دې ایوان نه بهر هواربدل پکار دي او ستاسو دَ اجازت نه پس په ایوان کښې په دې بحث کېدے شي چې آیا تحریک پېش کونکي غړي ته دَ تحریک وړاندې کولو مهلت ورکړے شي کۀ نه؟ جناب صدر! دا وخت صورت حال لږ کړکېچن دے ځکه چې ستاسو دَ اجازت په سوال بحث کېږي خو مونږ سره دَ تحریک نقل موجود نۀ دے. له دې وجې زما تجویز دا دے چې دَ تحریک پېش کولو دپاره ستاسو دَ اجازت سوال دَ ایوان دَ کارروایۍ شروع کېدو نه مخکښې اخستل پکار وو.

**صدر مجلس**: په دې خبره به غور کولے شي. دَ تحریک باره کښې زما خپل هم څۀ خیالات شته. بیا هم کۀ معزز ممبران څۀ وئیل غواړي نو

زۀ ئې په خوشحالۍ اوربدو ته تیار یم. دته صاحب دا کوشش کوي چې هغه ولې دا تحریک باجوازه ګڼي او زما خیال دا دے چې دَ بحث دوران کښې به دا واضحه شي چې دا تحریک په اصل کښې څۀ شے دے او دغسې به ټول غړي هم پوه شي چې دَ څۀ باره کښې دے؟

**جناب دهرندراناتهـ دته:** جناب صدر! دَ دې تحریک غرض دا دے چې دَ ایوان کارروایي دې دَ څۀ وخت دپاره بنده کړې شي او په یوه داسې معامله دې بحث وکړے شي چې دَ سمدستي او عوامي اهمیت حامله ده. دا معامله په اصل کښې دَ دې ایوان دَ یو معزز غړي خان عبدالغفار خان دَ ګرفتارۍ او قېد ده. جناب صدر! تاسو ته خو پته ده چې خان عبدالغفار خان....

**صدر مجلس:** په کومه نکته چې زۀ اطمینان حاصلول غواړم، هغه دا ده چې دې معاملې سره اخر دَ مرکزي حکومت تعلق څۀ دے؟

**جناب دهرندراناتهـ دته:** تعلق دا دے چې یو خو خان عبدالغفار خان دَ دې ایوان ممبر دے. دوېم دا چې دې دَ 1901 ء دَ فرنټیئر کرائمز رېګولېشنز لاندې ګرفتار کړے شوے دے کوم چې دَ 1901ء دَ سنټرل رېګولېشن درېم نمبر وۀ. نو هر کله چې هغه دَ دې ایوان یو غړے دے او دَ فرنټیئر رېګولېشنز لاندې ګرفتار شوے دے، لـه دې وجې عملاً دَ هغوي دَ ګرفتارۍ ذمه وار مرکزي حکومت دے. دا خو ښېخي ناممکنه ده چې دَ دې ایوان یو ممبر دَ مرکزي حکومت دَ مرضۍ او علم نه بغېر ګرفتار کړے شي. جناب صدر! تاسو ته ښه پته ده چې دَ دنیا یو ملک داسې دے چې دَ هغه ځائے دستور دَ پارلیمان دَ یو ممبر دَ ګرفتارۍ نه منع کوي. زما اشاره جنابِ صدر فرانسیسي دستور ته ده. آیا دَ فرانسیسي

پارلیمان یو غړے دَ فرانسیسي پارلیمان دَ اجازت او علم نه بغیر گرفتارېدے شي؟ خان عبدالغفار خان چونکې دَ دې ایوان یو ممبر دے....

**جناب عبدالحمید**: جناب! زۀ یوه دَ اعتراض نکته پورته کوم. مونږ دلته بحث په دې کوو چې آیا معزز ممبر ته دَ ایوان دَ کارروایی ودرولو او دَ خپل تحریک وړاندې کولو دپاره ستاسو اجازت حاصل دے یا نه؟ خو معزز ممبر دَ خپل تحریک جزویات پېش کوي. تر کومې چې دَ دې دستور ساز مجلس دَ غړو دَ استحقاق تعلق دے نو کۀ دا معامله په باقاعده توگه اوچته کړې شي نو مونږ به په خوشحالی په دې بحث وکړو.

**صدر مجلس**: زما خیال دے چې دته صاحب صحیح خبره کوي.

**جناب دهرندراناته دته**: دَ التواء دَ تحریک دَ وړاندې کولو چې کومې ضابطې دي په هغې کښې په دې لړ کښې صرف دَ دوو شرطونو ذکر دے. ضابطه نمبر ۱۲ مطابق:

«دَ عوامي اهمیت او سمدستي نوعیت لرونکیو معاملو باندې دَ التواء دَ تحریک پېش کولو دپاره دا دوه شرطونه دي:

(۱) دَ ایوان په یو اجلاس کښې دَ یو قسم او یو نوعیت دوه تحریکونه به نۀ شي پېش کولے.

(۲) یو تحریک کښې به دَ یو نه په زیاتو معاملو بحث نۀ شي کولے. یو تحریک به دَ حالیه نوعیت دَ یوې واقعې پورې محدود وي.

جناب صدر! دا واقعه اوسنی ده ځکه چې دَ جون په میاشت کښې دَ دې پېښې نه پس دا دَ دې ایوان وړومبے اجلاس دے. دا وجه ده چې

دې باره کښې دَ التواء دَ تحریک پېش کولو دپاره اجازت غوښتے شي.

جناب صدر! دَ ضابطه نمبر ۱۲ شق نمبر درېم مخکښې وائي چې:

(۳) تحریک کښې به داسې څۀ موضوع دَ بحث لاندې نۀ شي راوستې په کومه چې دَ ایوان په یو اجلاس کښې مخکښې بحث شوے وي.

دَ دې نه علاوه دَ شق نمبر ٤ مطابق:

(٤) کۀ یوه معامله دَ وړومبي نه دَ غور قابله ګرځولې شوې وي نو هغه دَ تحریک موضوع نۀ شي ګرځېدې. کۀ یوه معامله په دې بنیاد دَ قابل بحث ګرځېدو جواز بائلي نو صدر مجلس اختیار لري چې هغه دغه معامله ایوان ته دَ وړاندې کولو دپاره دَ یو معقول میعاد تعین وکړي.

نو جناب صدر! دا هغه خبرې دي کومو سره چې دَ التواء دَ تحریک پېش کول مشروط کړي شوي دي. دَ دې نه پس دَ شق نمبر ٥ مطابق دَ تحریکونو دَ موضوعاتو په لړ کښې مونږ ضابطه نمبر ۲۳ ته رجوع کولے شو، چرته چې دَ قرارداد په ذریعه کېدونکو بحثونو دَ موضوعاتو متعلق شرطونه بیان کړي شوي دي. دَ ذکر شوې ضابطې مطابق:

(۱) قرارداد به دَ ایوان دَ غړو دَ واضح اظهار په صورت کښې وي.

(۲) داسې یوه معامله به دَ قرارداد موضوع نۀ شي جوړولې چې دَ پاکستان په یوه علاقه کښې دَ اختیار لرونکي عدالت دَ غور لاندې وي.

زما عرض دا دے جناب! چې دا وخت دَ خان عبدالغفار خان دَ گرفتارئ او قيد معامله په هيڅ يو عدالت کښې هم زير غور نهٔ ده، له دې وجې نه دَ ضابطه نمبر ۲۳ دَ شق نمبر ۲ لاندې زما دَ التواء تحريک نهٔ راځي. دَ دې ضابطې دَ دريم شق مطابق:

(۳) قرارداد چې دَ کوم وزارت سره تعلق لري، دَ هغې انچارج وزير به دَ دې دَ وړاندې کولو نه سمدستي پس په دې قرارداد يا دَ دې په يوه برخه په دې بنياد اعتراض کولے شي چې دا دَ مفاد عامه دپاره نقصان لرونکے دے.

نو جناب صدر! دَ ذکر شوو ټولو ضابطو اثر زما دَ التواء په تحريک نهٔ پريوځي. دَ دې نه پس کهٔ قائمه قوانينو ته رجوع وکړے شي نو دَ متعلقه کتاب صفحه ۱۳ او ۱٤ باندې به تاسو ته قانون نمبر ۲۲و۲۳و ۲٤ ښکاره شي. په دې کښې ۲۱ قانون دَ تحريک التواء دَ وړاندې کولو دپاره دَ اجازت غوښتو دَ متعلقه ميعاد متعلق دے....

**صدر مجلس**: دا سوالونه غير متعلقه دي. په کومه نکته چې تاسو ما مطمئن کول غواړئ، هغه دا ده چې دَ دې معاملې دَ مرکزي حکومت سره څهٔ تعلق دے؟

**جناب دهرندراناته دته**: جناب! چونکې دَ متعلقه شرطونو اثر زما په تجويز کړي تحريک نهٔ پريوځي ځکه نو زهٔ دَ دې دَ وړاندې کولو حق لرم. خصوصاً په دې وجه هم چې خان عبدالغفار خان دَ دې ايوان ممبر دے او دے دَ فرنټيئر کرائمز ريګوليشنز لاندې گرفتار شوے دے.

**خواجه شهاب الدين (وزير داخله و وزير برائے ابادکاري و پناه ګزين):** جناب! زما په دې تحريک اعتراض دے ځکه چې دا موضوع په بنيادي توګه دَ مرکزي حکومت سره تعلق نۀ لري. دَ حوالې دپاره زۀ هغه شق پېش کول غواړم، کوم چې زما معزز ملګري پېش کړو يعني شق نمبر ١٢. زما معزز ملګرے يو هوښيار وکيل دے او له دې وجې هغوي په ډېره اسانۍ ووې چې شق نمبر ١٢ دَ شق نمبر ٢٣ سره تړلے دے خو زما اشاره دلته شق نمبر ٢٣ ته نه بلکې دَ شق نمبر ٢٢ وړومبۍ برخې ته ده چې:

((صدر مجلس اختيار لري چې هغه دَ قرارداد نوټس په خپل ميعاد کښې دننه څۀ وخت چې غواړي پوره يا دَ هغې يوه برخه په دې بنياد رد کولے شي چې دَ هغې تعلق په بنيادي توګه دَ حکومت پاکستان سره نۀ وي.))

چونکې هم داسې ده، له دې وجې دَ تحريک دَ وړاندې کولو اجازت نۀ شي ورکېدے. دَ شق نمبر ٢٢ اطلاق دلته کېږي ځکه چې تحريک دَ يوې داسې معاملې په حقله دے چې دَ هغې بنيادي تعلق دَ مرکزي حکومت سره نۀ دے. دَ سرحد حکومت دَ يو داسې (قانون لاندې) قدم پورته کړے دے چې دَ مرکزي حکومت له اړخه هغه وخت جوړ شوے وۀ کله چې دغه صوبه دَ مرکز لاندې وه. بيا هم دا وخت هغه دَ يو صوبائي قانون حېثيت لري او په هغې عمل درآمد کول صوبائي صوابديد دے. دَ مرکز سره دَ دې هېڅ بنيادي تعلق نشته. زما ګزارش دا دے چې دَ شق نمبر ١٢ دَ کوم مطابق چې:

((تحريک په يوه داسې موضوع پکار نۀ دے چې په کومه قرارداد نۀ شي پېش کېدے.)) دَ شق نمبر ٢٢ ماتحت دے دَ کوم مطابق چې صدر مجلس دَ مرکزي حکومت سره دَ تعلق نۀ لرلو په بنياد دَ يو

قرارداد تجویز مسترد کولے شي. زما گزارش دا دے چې دا تحریک دي دَ وړاندې کولو دپاره منظور نۀ کړے شي.

**جناب لیاقت علي خان (وزیر اعظم و وزیر دفاع)**: معزز وزیر داخله صاحب چې څۀ وفرمائیل زۀ په هغې کښې لږه اضافه کول غواړم. دَ تجویز کړي تحریک دَ پېش کولو خواهشمند ممبر دَ دې تحریک دَ قابل بحث کېدو دپاره دوه جوازونه وړاندې کړل. اول دا چې خان عبدالغفار خان دَ دې ایوان یو معزز غړے دے. جناب صدر! زمونږ دې معزز ملگري ته به یقیناً دا علم وي چې کۀ دَ دې ایوان په غړو کښې څوک یو جرم وکړي نو دَ دې ملک دَ یو عام وګړي په شان به هغه گرفتارولے شي او سزا به ورکولے شي. البته کۀ په ایوان کښې معززو غړو ته په دې لړ کښې بعضې مراعات دَ قانون له مخې ورکړې شي نو بیا جدا خبره ده نو دَ معزز ملگري په دې دلیل کښې هیڅ وزن نشته. دوېمه وجه دوي دا بیان کړه چې دَ کوم قانون لاندې خان عبدالغفار خان په حراست کښې ساتلے شوے دے، هغه چونکې دَ مرکزي حکومت منظور کړے قانون دے ځکه نو دَ دې معاملې تعلق دَ مرکزي حکومت سره جوړېږي. زمونږ معزز ملگري ته دې معلومه وي چې کله دا قانون منظور شوے وۀ نو هغه وخت په دغه صوبه کښې دَ قانون سازۍ قابل حکومت موجود نۀ وۀ. له دې وجې نه دا قانون مرکزي حکومت جوړ کړے وۀ. لکه چې ووئیلې شو چې هغه وخت دَ صوبه سرحد دپاره قانون سازي ممکنه نۀ وه. بیا هم اوس دَ صوبه سرحد له جانبه په دې قانون عمل درآمد دَ مرکزي حکومت دَ کنټرول نه بغیر کولے شي. دا تحریک دَ یو داسې اقدام سره تعلق لري چې هغه صوبائي حکومت کړے دے. له دې وجې نه زۀ هم دَ معزز ملگري دې خبرې سره متفق یم چې دا معامله دَ کومې په حقله چې دَ التواء تحریک دپاره په دې ایوان کښې تجویز پېش

شوے دے دَ مرکزي حکومت سره بنیادي تعلق خو لرې خبره ده، هيڅ قسم تعلق هم نۀ لري.

**جناب دهرندرانات دته**: جناب! کۀ دَ داسې تحريک التواء په صوبائي اسمبلۍ کښې دَ پيش کولو کوشش وشو نو هلته دا سوال راپورته کېدے شي چې خان عبدالغفار خان خو دَ صوبائي اسمبلۍ غړے نۀ دے. له دې وجې نه زۀ دا په دې بنياد په دې ايوان کښې دَ پيش کولو اجازت غواړم چې خان عبدالغفار خان دَ دې ايوان يو معزز غړے دے. کۀ دا تحريک دَ بحث دپاره دلته منظور نۀ کړے شو نو اخر زۀ به چرته ځم.

**صدر مجلس**: دَ دته صاحب بيان کړې خبرې دَ زير نظر موضوع سره هيڅ تړون نۀ لري. موږ دلته په دې خبره غور کوو چې ايا داسې قسمه يو تحريک به صوبائي مجلس قانون ساز کښې باجوازه وي او کۀ نه. دا قسمه سوال کۀ په صوبائي مجلس کښې اوچت هم کړے شي نو هلته به دَ بحث بنيادي نکته دا وي چې متعلقه سړے دَ مرکزي اسمبلۍ غړے دے کۀ دَ صوبائي مقننې، يا دَ يوې مقننې غړے دے يا نه، بلکې هلته به دَ داسې تحريکونو باره کښې فيصله دَ نورو عواملو دَ لاندې کولے شي.

په هر حال تر څو چې دَ دې مجوزه تحريک تعلق دے نو دا واضحه شوې ده چې مرکزي حکومت دَ خان عبدالغفار خان دَ گرفتارۍ او قيد سره هيڅ تعلق نۀ لري. زۀ افسوس کوم چې دا تحريک په دې ايوان کښې نۀ شي پيش کېدے، زۀ دَ دې دَ اجازت ورکولو نه معذرت کوم.

# دَ صدر مجلس دپاره

# دَ خان عبدالغفار خان پیغام

**خان عبدالغفار خان**: جناب نائب صدر مجلس! دَ کتهوتیۍ دَ دې تحریک پېش کولو نه زما مقصد دا دے چې زۀ معزز ایوان ته دَ پاکستان دَ انتظامیې باره کښې څۀ ووئیلے شم. زما دَ دې نه قطعاً دا مقصد نۀ دے چې دَ پاکستان په حکومت تنقید وکړم یا دَ هغوي خامۍ په نخښه کړم. زما دا خواهش دے چې زۀ په هغو غلطو لړه رڼا واچوم او دَ هغې دَ ختمولو کوشش وکړم چې دَ دې حکومت بعضې اهلکارو او بعضې غېر سرکاري خلقو زما خلاف خورې کړې دي.

دَ ټولو نه اول په ما دا الزام لګولے شي چې زۀ او زما جماعت دَ پاکستان دشمنان دي او دوي ملک ټوکړې ټوکړې کول او تباه کول غواړي. زۀ بحث کول نۀ غواړم خو دومره ضرور وایم چې په دې معامله ماته په خپله صوبه کښې چرته هم موقع په لاس راغلې ده نو ما پرې ښه رڼا اچولې ده. دَ دې باوجود دَ پاکستان بعضې ذمه وارکسان تر اوسه په دې حقله دَ تذبذب ښکار دي چې آیا زۀ دَ دې ملک دوست یم کۀ دشمن؟ هغوي دا ګڼي چې زۀ دا ملک تباه کول غواړم. هغوي دَ دې خبرې نه انکار نۀ شي کولے چې زۀ کله کله دَ داسې غلط فهمیو دَ لرې کولو کوشش کوم. هغوي ته دا هم معلومه ده چې کله هم ماته په خپله صوبه کښې خلقو ته دَ تقریر کولو موقع راکړې شوې ده نو ما هغوي ته صفا وئیلي دي چې زما دیانتدارانه رایې دا وه چې هندوستان دې تقسیم نۀ شي. لکه چې اوس مونږ

ټولو وليدل چې په زرګونو نه بلکې په لکونو ځوانان، بوډاګان، ماشومان او ښځې دَ دې په نتيجه کښې قتل شو. زۀ اعتراف کوم چې زۀ دَ هندوستان دَ تقسيم په حق کښې نۀ وم خو اوس چې هرکله دا تقسيم شوے دے نو دَ دې سره متعلق تنازعه هم ختمه شوه. ما دَ هندوستان دَ تقسيم خلاف ډېر تقريرونه کړي وو خو سوال دا دے چې زما خبره چا واورېده هم او کۀ نه؟ مونږ په صوبه سرحد کښې مسلم ليګي حکومت ته وئيلي وو چې مونږ به دوي له دَ حکومت کولو موقع ورکوو خو کومه رويه چې دې حکومت دَ پښتنو سره وچلوله، هغه ډېره ناقابل برداشت وه. خلق به ماله راتلل او زما نه به ئې دَ مستقبل باره کښې دَ لائحۀ عمل پوښتنه کوله چې زۀ راروان وخت کښې څۀ کول غواړم ځکه چې دَ پاکستان له خوا کوم قسمه حالات تخليق کړي شوي وو، هغه زمونږ دپاره قابل برداشت نۀ وو. دوي وائي چې دا کوم خلق دي؟ مونږ خو هغه خلق يو چې دَ پېرنګي په شان دَ طاقتور قوم مقابله مو کړې ده، چا چې مونږ لُوټلو. ما هغوي پوه کړل چې اوس دَ پېرنګيانو دَ حکومت په شان حال نۀ دے. اوس سوال بيل دے. دَ پېرنګيانو حکومت يو خارجي حکومت وۀ خو اوس دَ مسلمانانو خپل حکومت جوړ شوے دے. ما دَ پاکستان حکومت ته بيا بيا ووې چې مونږ تاسو له دَ حکومت کولو پوره پوره موقع درکوو. دلته قوم اندروني توګه باندې يو خلفشار پله بوتللے شي ځکه چې دَ جنګ خوښو دا خيال وۀ چې جدوجهد څنګه مخ په وړاندې ځي نو قوم پرستانه او وطن پرستانه جذباتيت به پرې غالب راځي او دغسې به دَ حکومت تعميري کار ودرېږي. ماته دَ دې خطرې احساس ډېر مخکښې شوے وۀ. زما په حقله چې ستاسو رايې هر څنګه وي؟ خو حقيقت دا دے چې زۀ دَ تعمير سره مينه لرونکے انسان يم. تخريب سره زما هيڅ کار نشته. دغه شان زۀ دَ

نظریاتو نه زیات په عمل یقین لرم. کهٔ تاسو زما ژوند مطالعه کړئ نو پوه به شئ چې ما خپل ژوند دَ ملک او قوم دَ ترقۍ او ښېګړې دپاره وقف کړے دے. زهٔ دلته دا هم وئیل غواړم چې خدائي خدمتګار تحریک یو سماجي تحریک وهٔ سیاسي نهٔ وهٔ. دَ دې تحریک دَ سیاسي کولو ذمه وار پېرنګیان دي چا چې مونږ دَ کانګرس سره وتړلو. زهٔ دا خبره صرف دلته نهٔ کوم بلکې ما دا خبره دَ ډېرو لویو لویو پېرنګیانو عهد یدارانو په مخکښې کړې ده ځکه چې ما له الله پاک همت راکړے دے.

په مونږ دا الزام لګولے شي چې دا خدائي خدمتګار دَ هندوانو غلامان دي مونږ دَ تعمیري کارونو دپاره حکومت کولو ته نهٔ پرېږدي ځکه چې دَ تعمیري کار تسلسل په ملک کښې دَ امن سره تړلے دے. زمونږ رویه دَ دوي دپاره اعلانیه دا وه چې کهٔ دَ پاکستان حکومت زمونږ دَ ملک او زمونږ دَ خلقو دپاره کار کوي نو خدائي خدمتګار به ئې ملګري وي. زهٔ دلته دا خبره تکراروم چې زهٔ دَ پاکستان تباهي نهٔ غواړم. تباهي زهٔ دَ هیچا نهٔ غواړم، نهٔ دَ هندو، نهٔ دَ مسلمان، نهٔ دَ سرحد، نهٔ دَ پنجاب، نهٔ دَ بنګال او نهٔ دَ سندهـ. فائده صرف او صرف په تعمیر کښې ده. زهٔ تاسو ته ایغه نېغه خبره کوم چې زهٔ به په تباه کارۍ کښې دَ هیچا ملګرے نهٔ یم. کهٔ تاسو څهٔ تعمیري مقاصد لرئ، کهٔ تاسو دَ ملک او قوم دپاره تعمیري کار کول غواړئ، صرف په خبرو نه بلکې په عملي توګه نو زهٔ دَ دې معزز ایوان په مخکښې دا اعلان کوم چې زهٔ او زما خلق به ستاسو په خدمت کښې حاضر وي.

دَ تېرو اوو میاشتو نه زما دَ پاکستان انتظامیې ته پام دے، دوي کښې او پېرنګیانو کښې ما هېڅ یو څیز مختلف ونهٔ لیدو. کېدے شي زهٔ په غلطه یم خو عام تاثر دا دے. زهٔ یواځې دا نهٔ

وایم. تاسو لاړ شئ او دَ غریبانو نه پوښتنه وکړئ نو زما دَ دې خبرې تصدیق به وشي. کېدے شي تاسو دَ طاقت په زور دَ هغوي اواز اوچتېدو ته پرې نهٔ ږدئ خو یاد ولرئ چې طاقت او جبر پائیدار نهٔ وي. په وقتي توګه جبر نه کار اخستے شي خو کهٔ تاسو خلق دَ زور لاندې ساتئ نو دَ هغوي په زړونو کښې به ستاسو خلاف نفرت پېدا کېږي. دا پرېږدئ. نن دَ پېرنګي دَ دور نه زیات کرپشن کېږي. ممکنه ده چې ستاسو زما په نیت شک وي خو زما په تقریر کښې تخریب نشته. زهٔ دلته دَ یو دوست په توګه راغلے یم. کوم حقائق چې زهٔ تاسو ته مخې ته ږدم، په دې لږ غور وکړئ. کهٔ دا تاسو ته دَ پاکستان دپاره فائده مند ښکاره شو نو دا به ښه خبره وي ګني نو دَ ردی ټوکرۍ ته ئې وغورځوئ.

مونږ دَ پېرنګیانو خلاف جنګ ولې وکړو؟ ځکه چې مونږ هغوي دَ دې خاورې نه وېستل غوښتل او په خپل ملک خپله حکمراني ترلاسه کړو. مونږ دَ پېرنګیانو نه خو وطن واپس واخستو خو نن مونږ ګورو چې دَ وړومبي نه په زیات شمېر کښې دَ بهر نهٔ پېرنګیان راغوښتے شي. کهٔ سرحد وي کهٔ قبائلي علاقې هر ځائے دَ بدقسمتۍ نه هغه زړې پالیسۍ او هغې زړې طریقې رواني دي. مونږ ته هېڅ بدلون په نظر نهٔ راځي. دا زهٔ ډېر په افسوس وایم چې زمونږ هندوانو وروڼو چرته هم په خپلو صوبو کښې پېرنګے ګورنر نهٔ دے جوړ کړے بلکې هلته خو صرف سړي نه یوه ښځه هم ګورنره جوړه شوې ده نو ولې دلته بنګال او پنجاب صوبو کښې هېڅ یو داسې مسلمان نهٔ وهٔ چې زمونږ ګورنر جوړ کړے شوے وې. زهٔ ډېر افسوس سره وایم چې کوم پېرنګیان مونږ دَ ملک نه وېستي وو، هم هغوي راوستے شي او زمونږ په سرونو کښېنولے شي. ایا دا اسلامي اخوت دے؟ آیا دې ته مونږ وروروَلي وئیلے شو؟ دا اسلامي

پاکستان دے. دَ انتظامیې صرف دا یو نقص نۀ دے. یو بل نقص ته هم اشاره کول ضروري دي او هغه دا چې آرډیننس او قوانین هم په هغه زړه طریقه جاري کولے شي. کومه خبره چې ما ته ډېر تکلیف رسوي هغه دا ده چې سرکاري اعلامیې په هغه ژبه او لهجه کښې جاري کېږي چې پېرنګیانو رائج کړې وه. کۀ پېرنګي حکومت دروغ وئیل نو هغه خو دَ بهر نه راغلے وۀ او دَ هغۀ دَ راتللو غرض زمونږ خېر ښېګړه نۀ وه. هغه خو خپلو فائدو پسې راغلے وۀ. دَ هغوي نه ماته اوس ښېخې شکایت نشته خو دَ پاکستان نه راته سخت شکایت دے چې دا زمونږ خپل حکومت دے او دا خلق هم زمونږ خپل خلق دي. مونږ له دَ پېرنګیانو چلونه او فرېبونه پرېښودل پکار دي. کۀ مونږ په دې طریقو عمل پېرا پاتې شو نو یاد ولرئ چې دا ملک چې مونږ په ډېرو سختو او تکلیفونو حاصل کړے دے، به زمونږ دَ لاس نه وځي.

زۀ یوه بله خبره هم کول غواړم. ما باندې دا الزام لګولے شي چې زۀ په خپله صوبه کښې په خلقو کښې دَ جدا قومیت او صوبائیت احساسات راببداروم. زمونږ پښتنو دپاره دا دواړه څیزونه ښېخي نا اشنا دي. مونږ ته پته نشته چې صوبائیت څۀ ته وائي؟ زما خپله تجربه دَ صوبائیت په حقله دا ده چې دَ پښتنو په دې کښې هېڅ وجود نشته. تاسو لا سندھ مثال واخلئ، ولې دا هلته صوبائیت مونږ تخلیق کړے دے؟ سوال دا دے چې صوبائیت څنګه پېدا کېږي؟ کېدے شي تاسو دَ مذهب په نوم تر یو وخت پورې خلق ګمراه وساتئ خو دَ دې نه پس دَ یوې اوږدې مودې دپاره دا څیز برقرار ساتل به ستاسو دپاره ممکن نۀ وي. دا یو عارضي څیز دے او غیر مستحکم هم دے. زۀ دا پوښتنه کول غواړم چې دا حالات چا پېدا کړي دي او ولې؟ دَ علت او معلول تعلق یو قدرتي قانون دے.

دَ علت نه بغېر هېڅ شے وجود نۀ شي موندے. مطلب دا چې داسې حالات په خپله نۀ راپېدا کېږي.

**جناب لیاقت علي خان** (**وزیر اعظم و وزیر دفاع**): دا راپېدا کړې شوي دي.

**خان عبدالغفار خان**: زۀ دا وئیل غواړم چې څومره تاسو دا معامله اوږدوئ دومره به ناخوشګواري پېدا کېږي. زۀ خبره ترخول نۀ غواړم. تاسو زما دَ فطرت نه واقف یئ. زۀ تقریرونه نۀ کوم خو نن په وړومبي ځل لګیا یم، تقریر کوم او زما مقصد صرف دا دے چې زما دَ دې خیالاتو نه تاسو خبر شئ چې تر اوسه ترې تاسو نۀ وئ خبر. زۀ په دې معامله کښې نور ژور نۀ ځم. سندھ کښې صوبائیت ولې دے؟ آیا دا پښتنو پېدا کړے دے؟ کله چې وزیر اعظم صاحب پېښور ته راغلے وۀ نو زمونږ مسلم لیګیانو وروڼو دوي ته هغه خبره وکړه کومه چې مونږ کوو خو وزیر اعظم صاحب ووې چې زۀ دَ خېبر نه تر چټاګانګ پورې ټول مسلمانان متحد کول غواړم. نو بل اړخ ته تاسو ته په دې اعتراض ولې دے؟ چې پېرنګیانو پښتانۀ ټوکړې ټوکړې کړي وو، هغه بیا متحد شي او مستحکم شي. دا څنګه دَ اسلام خلاف ده؟ کۀ تاسو دَ پښتنو دَ یو مضبوط او مستحکم ریاست په جوړولو کښې مونږ سره مدد وکړئ نو دا به دَ چا طاقت وي؟

**جناب غضنفر علي خان وزیر برائے ابادکاري و پناه گزین**: دا دَ اسلام خلاف دي.

**ملک فیروز خان نون** (**مغربي پنجاب مسلم**): او تاسو به دَ افغانستان سره شامل شئ.

**خان عبدالغفار خان**: زۀ تاسو ته صفا وایم چې مونږ دَ افغانستان په ځائے صرف تاسو سره شاملېدے شو، ستاسو دعوٰي په مونږ زیاته قوي ده.

په پښتنو مختلف الزامونه لګولے شي کله وائي چې دوي دَ هندوانو په شان دي او بل طرف ته هغه خلق چې دَ اسلام سره هېڅ تعلق نۀ لري هغوي ته مسلمانان وائي. څومره لویه المیه ده. دا جواب ورکول ناګزیر ښکاري. هندوستان کښې دا وخت یو بیل هندو حکومت قائم دے او پاکستان کښې هم دَ مسلمانانو حکمراني ده. زمونږ بنګالیان ورونه مونږ نه دَ زرو میلو په فاصله پراتۀ دي خو دَ دې باوجود هغوي سره زمونږ په اتحاد اوسېدل ممکن دي نو زمونږ هغه پښتانۀ ورونه چې مونږ سره دومره نزدې اوسي څوک چې پېرنګیانو دَ خپلو مفادو دپاره تقسیم کړي وو ځکه چې هغوي ته دَ پښتنو دَ یووالي نه خطره وه، خو تاسو ته دَ پښتنو نه څۀ خطره ده؟ پېرنګے خو دَ خپلو خودغرضه مقصدونو دَ حصول دپاره دلته حکمرانۍ له راغلے وۀ. هغوي په مونږ کښې نفاق پېدا کړو لېکن تاسو خو زمونږ ورونه یئ تاسو ته زمونږ نه څۀ ویره کېدے شي؟

**جناب لیاقت علي خان**: مهرباني به وي دَ خپلې خبرې لږ وضاحت وکړئ.

**خان عبدالغفار خان**: نن زۀ تاسو ته وایم چې زمونږ دَ پټانستان مطلب څۀ دے؟ تاسو ته پته ده چې دَ سندهـ اوسېدونکو ته سندهیان وئیلے شي او دغه شان دَ پنجاب او بنګال اوسېدونکي ته بالترتیب پنجابیان او بنګالیان وئیلے شي. دغه شان زمونږ شمالي مغربي سرحدي صوبه ده. دلته اوسېدونکي مونږ ټول یو قوم یُو او دا زمونږ خاوره ده. مونږ هم غواړو چې زمونږ دَ وطن دَ نوم نه دې خلقو ته پته

ولکي چې دلته پښتانۀ اوسي. ولې دَ اسلامي احکاماتو لاندې داسې خواهش کول ګناه ده؟

**جناب لیاقت علي خان**: پټهان دَ یوې خاورې نوم دے کۀ دَ یوې برادرۍ؟

**خان عبدالغفار خان**: پټهان دَ یوې سماجي ډلې نوم دے. مونږ به دَ خپلې خاورې نوم پښتونستان ږدو. دلته زۀ دا خبره واضحه کول غواړم چې دَ هند خلق مونږ ته پټهان وائي او دَ فارس خلق راته افغان وائي. زمونږ اصلي نوم پښتون دے. مونږ له پښتونستان پکار دے او مونږ غواړو چې ډیورنډ لائن دَ هغې غاړې پښتانۀ هم په یو ځائے په پښتونستان کښې راغونډ کړے شي. تاسو په دې لړ کښې مونږ سره امداد وکړئ. کۀ تاسو دې ته غیر اسلامي وایئ نو زۀ وایم چې دا عین اسلام دے. کۀ تاسو دا ګڼئ چې دې سره به پاکستان کمزورے شي نو زۀ تاسو ته وایم چې دَ یوې بیلې سیاسي اکایۍ قائمولو سره به پاکستان چرې هم نۀ کمزورے کېږي بلکې نور تقویت او استحکام به مومي. اکثر تکلیفونه او مشکلات دَ بداعتمادۍ په وجه وي خو په اعتماد دغه مشکلات حل کېدے شي. حکومتونه په اعتماد چلولے شي په بداعتمادۍ نه.

**نائب صدر مجلس**: نن دَ جمعې ورځ ده مونږ به خپل اجلاس دولس نیمې بجې ختموو. معزز غړي دَ خپل مقرر وخت نه زیات وخت اخستے دے. بیا هم زۀ دوي له نور وخت ورکول غواړم. آیا معزز ممبر به تر دولس نیمو بجو پورې خپل تقریر ختم کړي؟

**خان عبدالغفار خان**: او جي، زۀ به دَ مقرر شوي وخت پورې خپل تقریر ختم کړم.

يوه بله خبره هم شته چې خلق مونږ له په مسلم ليګ کښې دَ شامليدو دعوتونه راکوي. زما خيال دے چې مسلم ليګ خپل فرض تر سره کړل. دَ هغهٔ مقصد او دَ هغهٔ هلې ځلې صرف دَ دې دپاره وې چې پاکستان حاصل کړي نو پاکستان خو تر لاسه شو. زما مطلب دا دے چې هر کله پاکستان جوړ شهٔ نو دَ مسلم ليګ ضرورت پاتې نهٔ شهٔ. زمونږ په ملک کښې اوس نور جماعتونه پکار دي. په اقتصادي بنيادونو يو جماعت جوړول پکار دي چې پکښې ټول شامل شي چې حزب اختلاف پاتې نهٔ شي. په اقتصادي بنيادونو دا جماعت ځکه جوړول پکار دي چې زمونږ دا موجوده اختلافات دَ دې په ذريعه حل کيدے شي او دَ دې نه پس کهٔ زمونږ په مينځ کښې اختلافات پيدا شي نو مونږ به دغې جماعت سره کښېنو او دغه اختلافات به هوارو. اسلام يو داسې مذهب دے چې مونږ ته دَ ډير لوئے تحمل او صبر درس راکوي. کله چې مونږ يو بل سره دَ خيالاتو تبادله کوو نو لازماً به يو بل سره دَ ډير تحمل نه کار اخلو. دا نه چې زهٔ دَ چا مخالفت شروع کړم چې دَ دهٔ زما دَ نقطهٔ نظر سره اتفاق نشته. چونکې وخت محدود دے له دې وجې نه زهٔ صرف دَ يوې خبرې نشاندهي کوم او دې سره خپل تقرير ختموم. پاکستان يو غريب ملک دے، سوال دا دے چې يو غريب ملک حکومت څنګه وچلوي؟ دَ مثال په طور کهٔ زهٔ غريب يم نو ماله څهٔ کول پکار دي؟ مناسب به څهٔ وي؟ دا چې زهٔ دَ خپل څادر سره پښې وغزوم يا بيا په ظاهره دَ مالدارو په شان طرز خپل کړم؟ هر کله چې دا ومنلے شي چې پاکستان يو غريب ملک دے نو دَ دې دَ حکومت طرز سرمايه دارانه بيخي پکار نهٔ دے. دَ اميرانه شان نه پرهيز پکار دے. تاسو محصولات نافذول غواړئ نو ضرور نافذ کړئ خو دَ خدائے دپاره دَ غريبانو حالت دَ نظر لاندې وساتئ. خو سوال بيا هم هغه دے چې

مونږ له دَ خپلو وسائلو دننه اوسېدل پکار دي يا دَ مالدارو په شان ژوند اختيارول ضروري دي. دا رياست مونږ څنګه چلولے شو؟ دَ دې دپاره مونږ له طريقهٔ کار لټول پکار دي. زمونږ په وړاندې دَ قرون اولي دَ پېش روانو مثالونه موجود دي. يعني لاره زمونږ مخې ته ده مونږ له پرې تلل پکار دي. زمونږ عظيمو قائدينو چې کوم اسلامي سلطنت قائم کړے وۀ، صرف درې تنه وو. دَ دغو قائدينو اخلاق، کردار او دَ قربانۍ او همدردۍ جذبې خپلولو بغېر مونږ دَ پاکستان نه يو عظيم سلطنت نۀ شو جوړولے. دَ حضرت علي رضي الله عنه دَ نامې نه تاسو ټول واقف يئ، هغوي چې څۀ هم کړي دي نو دَ اسلام او خلقو دپاره ئې کړي دي. دَ هغوي هر عمل په اصولو بنا وۀ. يو ځل ئې خپل يو دشمن له دې وجې پرېښے وۀ چې هسې نه دَ دۀ په وژلو کښې زما دَ ذاتي خفګان دخل وي. زمونږ جذبه داسې پکار ده.

بيا دَ حضرت ابوبکر رضي الله عنه مثال وګورئ. دَ خليفه جوړېدو نه مخکښې دَ دوي هر يو عمل دَ مسلمانانو دَ ښېګړې دپاره وۀ. دَ خليفه په توګه دوي ځان له يوه ډېره معمولي وظيفه مقرر کړې وه او باقي مسلمانانو له ئې يو برابر رقم مقرر کړے وۀ. په اسلام يو الزام دَ عدم مساوات لګولے شي خو دوي عملاً دا ثابته کړې وه چې اسلام دَ ټولو انسانانو دَ ژوند دَ ضرورياتو په يو شان والي يقين لري. انسان غريب وي کۀ مالدار دَ هغۀ دَ ژوند ضروريات يو رنګ وي، اولاد دَ ټولو کېږي ځکه نو ضروريات هم دَ ټولو وي. داسې نۀ وي لکه چې تاسو وايئ چې ستاسو ضروريات زيات دي او زمونږ کم. تاسو دا هم نۀ شئ وئيلے چې دَ غريب بنده دَ مالداره کېدو هېڅ امکان نۀ وي ځکه چې امکانات ټول دَ مالدارو دپاره وي. دَ دې ټولو خبرو تعلق ثقافت او تهذيب سره دے او په دې سلسله کښې هېڅ تفريق پکار نۀ دے. چونکې بدني ضروريات دَ

ټولو يو شان دي، له دې وجې نه وظيفې هم دَ ټولو دپاره يو شان مقررول پکار دي. دَ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه معامله هم داسې وه. تاسو ته به علم وي چې کۀ يو غريب هم په هغوي نکته چيني کړې ده نو دَ هغې ځواب کښې هغوي خاموشي سره دَ هغۀ خبره اورېدلې ده او چې کله هغۀ خپله خبره ختمه کړې ده نو بيا ئې دَ اصل حقيقت نه خبر کړے دے او حوصله افزائي ئې ورله کړې ده. دَ داسې انسان په قيادت او رهنمايي کښې مسلمان چرې هم ګمراه کېدے نۀ شي کۀ تاسو هم دې اخلاقي اقدارو له ترقي ورکړئ نو ستاسو سلطنت به هم دغه شان مضبوط وي. کله چې هغوي خليفه جوړ کړے شو او دَ هغوي دَ تنخواه سوال راپورته شو نو هغوي خپله دا فېصله وکړه چې زۀ دَ مسلمانانو خادم يم او زما تنخواه دومره پکار ده، څومره چې دَ مدينې دَ يو عام مزدور اُجرت وي. له دې وجې نه زۀ وايم چې کۀ پاکستان غريب دے نو مونږ له دا حکومت په دې اصولو چلول پکار دي. دا ملک دے دَ چا؟ دا زمونږ دے او کۀ دې غريب وي نو مونږ به دې دَ يو غريب ملک په شان چلوو او چې سبا راته خوشحالي نصيب شي نو مونږ به ئې بيا په شاهانه طريقه هم وچلوو. خو زۀ تاسو ته دا وئيل غواړم چې دا وخت کوم عادتونه او اقدار مونږ خپل کړي دي دا به چرې هم مونږ خوشحالۍ پله ور نۀ ولي. مونږ به دا زړې طور طريقې پرېږدو او دَ قرون اولي اسلامي طرز به خپلوو. مونږ دَ دې زوړ نظام مخالفت صرف له دې وجې نۀ کوو چې دا مونږ له پېرنګيانو راکړے دے بلکې دَ دې دَ مخالفت اصل وجه دا ده چې دا هر څۀ دَ اسلام په نوم کولے شي او دَ دې اجازت مونږ نۀ شو ورکولے. کۀ دَ پاکستان حکومت په اسلامي خطونو وچلېدو نو زۀ به يقيناً دَ دې حمايت کوم. دَ پاکستان دپاره زما تصور دا دے چې دې يو ازاد پاکستان وي. مونږ غواړو چې په

دي دَ يو مخصوص ډلي يا مخصوص تن حق نهٔ وي بلکې دَ ټولو اوسېدونکو پرې يو شان حق وي. دَ دې ملک دَ ازادۍ نه دَ خوند اخستو حق دې دَ دې وطن ټول اوسېدونکو ته حاصل وي، په ځائے دَ دې چې يو څو تنه ئې استحصال کوي. مونږ غواړو چې دَ دې ملک حکومت دَ عوامو په لاس کښې وي. تر کومې چې دَ ماهرينو تعلق دے نو هغه مونږ دَ امريکې او برطانيې نه هم راغوښتے شو خو چې کله سوال دَ اختياراتو وي نو زهٔ دا نهٔ شم منلے چې پاکستان دَ قابلو او اهل خلقو نه محروم دے. ما اورېدلي دي چې په نوکرو کښې ځنې داسې پېرنګيان برقرار ساتلي شوي دي او نور ورله راغوښتے شي. زهٔ به لازماً دا وايم چې دا کار دَ پاکستان په مفادو کښې نهٔ دے.

**نائب صدر مجلس**: دَ ايوان کارروائي دَ سبا يوولسو بجو پورې ملتوي کولے شي.

دَ اسمبلۍ کارروائي دَ خالي دَ ورځې يعنې شپږم مارچ 1948 سحر يوولسو بجو پورې ملتوي کړې شوه.

# دَ پاکستان دَ دستور سازۍ اسمبلۍ

# تقریرونه

25 مارچ 1954ء

**خان عبدالغفار خان:** جناب صدر! زۀ ډېرې خبرې کونکے سیاسي مقرر نۀ یم خو اوس اوس یو معزز غړي دَ پښتونستان په حواله څۀ داسې خبرې وکړې چې هغې زۀ په څۀ وئیلو مجبور کړم.

جنابِ من! ماته محسوسېږي چې معزز غړے یا خو دَ دې معاملې متعلق څۀ علم نۀ لري او یا بیا عمداً په دې حقله یو غلط تاثر تخلیقول غواړي. تاسو ته به یاد وي چې په دې ایوان کښې یو ځل جناب لیاقت علي خان په دې باره کښې زما نه پوښتلي وو چې ما ډېر په وضاحت سره ځواب ورکړے وۀ. دَ لیاقت علي خان صاحب سوال دا وۀ چې دَ پښتونستان نه زما اصل مراد څۀ دے؟ ما هغۀ ته وئیلي وو چې وئیلے شي چې مونږ پاکستان کښې پینځۀ ورونړه اوسو یعني سندهـ، پنجاب، بلوچستان، بنګال او مونږ. زمونږ دَ باقي څلورو واړو ورونړو نومونه شته. چرته چې هغوي اوسي دَ هغې خاورې یو نوم شته. دَ مثال په توګه بنګال دَ یوې سیمې نوم دے او ټولو ته پته ده چې هلته بنګالیان اوسي. دغه شان چې څوک هم دَ پنجاب نوم واخلي نو بنده پوه شي چې دَ هغې خاورې ذکر کولے شي، چرته چې پنجابیان اوسي. څوک هم چې دَ سندهـ نوم واخلي نو اورېدونکے پوه شي چې دا دَ سندهیانو دَ وطن نامه ده. دغه شان زمونږ سیمه هم ده خو دَ هغې هېڅ نوم نشته. زمونږ دَ خاورې باره

کښې څهٔ تصور دَ چا په ذهن کښې تر هغې نهٔ شي جوړېدے تر څو چې دَ هغې سیمې خپل نوم نهٔ وي. له دې وجې زهٔ وایم چې زمونږ دَ علاقې دې یو خپل بامعنې نوم وي چې دا پته تري لګي چې دا دَ پښتنو سیمه ده. خبره صرف دومره ده خو زهٔ حېران یم چې دومره یو معقول سړے هم دَ پیش نه پشم خان جوړوي. لږ سوچ وکړئ چې دَ یو څیز باره کښې دَ علم حاصلولو بغېر په هغې بحث کولو او هغه په غلط انداز کښې پېش کولو او دَ هغې مذمت کولو باندې تاسو زمونږ اعتماد حاصلوئ او کهٔ بائلئ؟ ما څو ځله وئیلي دي چې تاسو له په مونږ اعتماد کول پکار دي لکه چې په نورو څلورو وروڼو ئې کوئ. کهٔ تاسو په مونږ اعتماد ونهٔ کړو او زمونږ سره مو دا سلوک جاري وساتلو نو حالات به دَ دې نه زیات خراب شي. زما په خیال کښې چې کوم خلق په دې لهجه کښې خبرې کوي، داسې پروپېګنډې کوي او پرېس له داسې بیانونه ورکوي، دَ هغوي مقصد زمونږ او زمونږ دَ څلورو وروڼو ترمینځ تعلقات خرابول دي.

جناب! زهٔ یو وار بیا دا وئیل غواړم چې زمونږ دَ خاورې یو نوم پکار دے. په دې نکته تاسو ښهٔ په سنجیدګۍ غور وکړئ. کومو خلقو ته چې زمونږ دَ دې مطالبې په باب له معلومات نشته، په دې ایوان کښې په هغې دَ بحث کولو او پرېس کښې دَ بیان بازو کولو په ځائے دې مونږ له راشي. دغه شان ځنې اخبارونه هم په دې حقله غلط فهمۍ پېدا کوي او خوروي. کهٔ دَ دوي په دې حقله څهٔ شکوک او شبهات وي نو ما له دې راشي او ما نه دې پوښتنه وکړي چې دَ پښتونستان نه زما څهٔ مراد دي؟ په دې لړ کښې زهٔ دَ دوي دَ شکونو لرې کولو دپاره هر وخت تیار یم. زهٔ دا خبره دوباره کول غواړم چې تاسو له پکار دي چې په مونږ اعتماد وکړئ. کهٔ تاسو په مونږ اعتماد وکړئ نو زمونږ مرسته او تعاون او مینه به تاسو ته حاصله

وي کومه چې به دَ پاکستان دَ عظمت، طاقت او استحکام باعث جوړېږي. هن کۀ تاسو په مونږ اعتماد ونۀ کړو نو دَ دې نتيجه به ډېره په ګرانه تسلي بخش راووځي.

## دَ جمعې ورځ دريم ستمبر 1954ء

**خان عبدالغفار خان:** جناب! زۀ په دې موضوع دَ څۀ اوږد تقرير کولو دپاره نۀ يم راپاڅېدلے ځکه چې په دې موضوع مخکښې ډېر څۀ وئيلي شوي دي. زۀ صرف دَ دې وئيلو دپاره راپاڅېدم چې بنګال کښې کوم تباه کونکے سېلاب راغلے دے، هغې سره به مونږ څۀ کوو او دَ هغه ځائے دَ بنګاليانو ورونو امداد به څنګه کوو؟ دَ دې سېلاب دَ تباهۍ نه دَ بچ کېدو دپاره به مونږ عملي اقدامات کوو. زما تجويز دا دے چې دَ مغربي پاکستان خلقو له پکار دي چې په دې سخت وخت کښې دَ مشرقي پاکستان دَ ورونو امداد وکړي. دا خبره اکثر کولے شي چې دَ مشرقي او مغربي پاکستان خلق دې يو بل ته رانزدې کړې شي او په دې لړ کښې کوششونه هم وشو. کۀ مونږ دا وخت دَ مشرقي پاکستان دَ ورونو خدمت ته ورمخکښې شو نو زما يقين دے چې دا مقصد به تر لاسه کړو. په دې حواله ماته دَ فارسۍ يو شعر راياد شو:

دوست آن باشد که ګيرد دست دوست
در پرېشان حالي و درماندګي

په انګرېزۍ کښې ئې مطلب دے A Friend in need is a friend indeed تر څو پورې چې زما دَ ذات تعلق دے نو زۀ به صرف دومره ووايم چې تاسو ته پته ده چې خدائي خدمتګارو په تېرو وختونو کښې هم ډېر زيات سماجي کارونه کړي او اوس هم مونږ دَ

بنګالیانو ورونو دَ مدد کولو دپاره سخت بېتابه یو. مونږ هلته ډاکټران او رضاکار او نور سماجي کارکنان لېږل غواړو چې زمونږ دَ بنګالیانو ورونو طبي او نور مختلف قسمه امداد وکړي. کهٔ حکومت مونږ له اجازت راکوي نو زهٔ دا وایم چې مونږ دَ دې کار پوره پوره اهلیت لرو.

زما دویم تجویز هم لږ واورئ. په دې ایوان کښې دَ دې نه بهر او پرېس کښې خلق دَ اسلام، اسلامي حکومت او اسلامي جمهوریې باره کښې ډېرې خبرې کوي. زهٔ تاسو ته دَ اسلامي حکومت یو مثال وړاندې کوم. تاسو به تاریخ کښې لوستے وي چې یو ځل په مدینه او دَ هغې په خواوشا کښې قات راغے. دا دَ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دَ خلافت زمانه وه. هغوي په خپله هم خوراک پرېښودو او قسم ئې وخوړو چې تر څو پورې دې خلقو ته خوراک په لاس نهٔ وي ورغلے نو زهٔ به ډوډۍ نهٔ خورم. نو زهٔ په دې ایوان کښې تاسو ته دا تجویز وړاندې کوم چې زمونږ ګورنر جنرل، وزیران او دَ دستور سازې اسمبلۍ غړي او اعلٰي سرکاري عهدېدار کهٔ ډوډۍ پرېښودے نهٔ شي نو دَ هغې مقدار کښې خو کمے راوستے شي کنه او دغه شان چې کومې پیسې بچ شي نو هغه به دَ بنګالیانو ورونو امداد له ولېږو. کهٔ مونږ کوشش وکړو نو دا لوئے آفت چې په مونږ راغلے دے دې سره مخ کېدے شو.

**جناب اکشے کمار داس (مشرقي پاکستان جنرل)**: جناب صدر! نن مونږ دَ هغې آفت متعلق خبرې کوو، کوم چې په بنګالیانو راغلے دے. جناب! دا آفت په اصل کښې په ټول قوم راغلے دے ځکه چې دې آفت دَ ملک تقریباً نیمه ابادي په ولقه کښې اخستې ده. دَ دنیا په کوم قوم هم حتٰي چې جنګ سره مخامخ شوے وي، په هغوي هم داسې لوے آفت نهٔ دے راغلے. کوم نقصانونه او تباهي چې دَ

مشرقي پاکستان خلقو برداشت کړې، هغه چرې دَ جنګ له وجې هم په چا نۀ دي راغلي. دا وخت دَ مشرقي پاکستان خلق چې په کومو حالاتو کښې اوسي دَ هغې بيان ممکن نۀ دے. په کوم حال کښې چې دَ مشرقي پاکستان څلور څلويښت ملينه خلق دا وخت دَ تباهۍ سره مخ دي، دَ هغې څوک تصور هم نۀ شي کولے. دا لا دَ تباهۍ شروع ده، دَ دې نه بدتر حالات لا راروان دي. کله چې اوبۀ کوزې شي نو دَ خلقو مشکلات او تکليفونه به نور هم زيات شي. په دې تکليفونو کښې دَ شل فيصده نه تر پنځوس فيصده اضافه ممکنه ده چې راشي.

جناب! مونږ دلته دا منو چې دَ مشرقي پاکستان په خلقو کښې مزاحمتي قوت او برداشت زيات دے. مونږ دَ هغوي دَ دې خصوصيت ستائنه کوو خو جناب! دَ مزاحمت هم يو حد مقرر وي دا خلق به تر کومه مزاحمت کوي؟ کۀ دَ دوي په وخت امداد ونۀ کړے شو نو دَ قدرت سره مقابله به دوي اخر تر کومه کوي؟ دَ مشرقي پاکستان خلق دا وخت دَ مرګ او ژوند په کشمکش کښې راګېر دي. ورځ او شپه دغه خلق دَ خپل مال اسباب، اولاد، څاروو او دَ خپلو بچو باره کښې سوچونه کوي کوم چې اوبو وړي دي. لږ دَ هغوي په حالت سوچ وکړئ. هلته داسې حاملې مېندې وې چې بچې ئې راوړي دي او دا وخت په اوبو کښې ژوند کوي چې په سر ئې بې دَ اسمان نه بل سېورے نشته. اوبۀ اوس دَ هغوي ټکونه ده. دې حالاتو ته هم وګورئ او بيا دَ مرکزي حکومت دَ دوي دپاره صرف دوه دېرش يا پينځۀ دېرش لکه روپۍ عطيه. آيا دا پېسې دَ هغوي دپاره کافي دي؟

جناب! دا څۀ ښۀ شروعات نۀ دي. دَ قومونو دَ بچ کولو دپاره کروړونه خرچ کول پکار وي ځکه چې کۀ يو قوم بچ نۀ شي نو بيا

حکومتي خزانه کښې دَ کروړونو پرتو روپو فائده څۀ ده؟ چې دَ ملک نیمه برخه دَ تباهۍ سره مخ ده نو په خزانه کښې دَ کروړونو څۀ ضرورت دے؟ جناب! زما دپاره دا خبره ډېره تکلیف ورکونکې ده چې مرکزي حکومت صرف پينځۀ دېرش لکه روپۍ تراوسه لېږلې دي. جناب! دَ مشرقي پاکستان انتظام دا وخت دَ مرکز په لاس کښې دے، له دې وجې نه دَ هغوي دَ بچ کولو ذمه واري هم دَ مرکزي حکومت ده. مرکزي حکومت دَ هغه ځائے دَ خلقو دَ حفاظت، دفاع او مستقبل ذمه وار دے. دَ مرکزي حکومت له اړخه مشرقي بنګال له صرف پينځۀ دېرش لکه روپۍ امداد ورکول یو قسم له ټوقې دي. ماته داسې ښکاري چې زمونږ وزیر اعظم صاحب په دې پوهېدلو کښې بېخي ناکامه شوے دے چې دَ مشرقي بنګال خلق دَ کومو تکليفونو سره مخ دي.

جناب! مونږ دلته په یو قومي آفت بحث کوو خو دَ ایوان دَ غړو حاضرۍ ته وګورئ چې ډېره زیاته کمه ده. دَ شرم خبره ده چې دَ یو قومي آفت په موضوع دَ خبرو په وخت دَ ایوان حاضري دومره کمه وي. پکار ده چې مونږ په دې خبره ځان پوه کړو چې دا وخت دَ نیم پاکستان ابادي دَ خطرې سره مخ ده. لږ دَ خلقو حالت ته وګورئ چې هغوي څنګه ژوند کوي؟ مونږ خپله هم ليدلي دي او اخبارونو کښې هم رپورټونه راغې چې دَ مشرقي بنګال خلق دَ تېرو اوو کالو نه خپل کورونه نۀ شي جوړولے ځکه چې هغوي سره بانس او دَ مرمت نور سامان نشته. بانس دَ پاکستاني علاقې نه بهر په لوئي مقدار کښې پېدا کېږي خو زمونږ خلق دَ کستم دَ مشکلاتو له وجې دَ هغې دَ حاصلولو نه قاصره دي. دَ پينځۀ سوه C.1 شيټونو نه علاوه ما ليدلي دي چې هندوستان څو لکه بانسونو ورکولو ته تيار دے خو صرف په دغې هم کار نۀ کېږي. مونږ له به نور بانس او دَ ځاروو

دپاره بُوس پکار وي، دا دَ تيپرا او اسام په رياستونو کښې ډېر زيات وي. مونږ له به دَ هندوستان نه نور امداد اخستل پکار وي. دا ټول څيزونه به مونږ له دَ هندوستان نه اخستل وي. امريکه زمونږ امداد کوي، لکسمبرګ مو مدد کوي، سعودي راسره لاس کوي. دغه شان دَ دنيا څو نور ملکونه هم مونږ سره مرسته کوي بيا هم مونږ ته دَ نور امداد سخت ضرورت دے. مونږ له دا ټول څيزونه پکار دي چې غريب خلق خپلې جونګړې جوړې کړې شي. دا ټول څيزونه په مشرقي پاکستان کښې نشته. هلته داسې خلق دي چې هغوي دَ اوسپنې څادرونه نۀ شي اخستے.

www.pdfbooksfree.blogspot.com

